ددولت له بودجې څخه د۱۸ مليونو افغانيو پهلګښت پهفعاليت شروع کړيده په کال کې ۲۰۰ زره چرګوړي شل زره هيلي د ۷۰۰زرو څخه تر ۸۰۰ زروپوری هګۍ بازار تهدخرڅلاو دپاره وړاندی کوی دچرګانو پروژه چه د۳۵ جريبه مځکې په ساحه کښې جوړه شوی ده دوداني چاری يې دوه کاله پخوا شرو ع شوی اواوس سرته رسيدلی دی اودهغه څخه ګټه اخستل شروع شويدی .

**دحمل ۱۲** : دمشرانو د جرګې ر ئيس ښاغلی سناتور عبدالهادی داوی او انتصابی سناتور ان چه پهدی وروستيو وختو کیدمعظم همايونی اعليحضرت دشا هانه حضور تـه دسناتور پهحيث تاکل‌شوی‌وه‌شاهانه‌حضورته ومنل:

* دايکافی سيمينار چه دهيواددا‌وبودمنابعو دپلانو دانکشاف لپاره دحمل په دوهمه ورځ شروع شوی و داوبو دمنابعو دپراختيا د موضوع په شاوخوا کښی لهيولړ غو نډ و او بحثو نونه وروسته پای تهورسيد.

* دهرات دسيلو دجوړيدلو کارچه دشلـو زروټنو غلی ظرفيت پهولری لهغرمی نه پخوا پهلس نيمو بجو دافغانستان د خورا کـی مواد اوعامه اړتيا ودموسسی در ئيس ښاغلی دوست محمدفضل اوښاغلی حميدالله عنا يت سراج لخوا شروع‌شو.

**دحمل ۱٤** : تمثيلی علنی محاکمه دکابل پهولايت کښی پرانستله شوه.

**دحمل ۱۵** : دجيالوژيکی څيړنو اوسرويو پراساس دحاجيګك پهکان کی دوه زرهمليونه ټنه اوسپنه تثبيت شويده.

**دحمل ۱٦** : معظم‌ټولواك‌همايونی‌اعليحضرت په داسی حال کی چه والاحضرت جنـرال سردار عبدالولی دکانو او صنايعو و زيـر ښاغلی امان الله منصوری دملکی هوايی او توريزم لوی رئيس ښاغلی سردار سلطـان محمودغازی له ـِ دوی سره ملګری و دارزګان دولايت څخه دکتنی پهنيت دکند هاربين‌المللی هوايی دګر تهورسيدل اودکندهار پههوايـی بين المللی ډګر کی دکندهار دوالی ښاغلی محمد صديق ددايرو دمشرانووکيلانوسناتورانو او مخورو لخوايی تودهرکلی وشو.

**دحمل ۱۷** : همايونی اعليحضرت ترغرمی دمخه داروزګان ولايت دمرکز او مربو طـو ولسواليو مخور او سپين ږير ډلهډله خپـل حضور تهومنل .

* دشهزاده محمد نادر ترمشری لا ند ی دافغانستان دزولوژی کميټی دورځـی په دوو بجو دزولوژی پهودانی کی د۱۳۵۰ کال لومړنی غونډی وکړه .

**دحمل ۱۸:** معظم‌ټولواك‌همايونی‌اعليحضرت له غرمی نهوروسته دهيلمند دولايت دنادعلی اوشمالان دکرنی پروژی وکتلی .

* دروغتيا بين المللی ور ځ پهټول‌هيواد کی دغونډ وپه جوړولو اودکنفرانسونو پـه ورکولو سره ونمانځل شوه.

**دحمل ۱۹** : همايونی معظم ټولـواك د اعليحضرت احمدشاه بابا دمقبری دترميم او ښکلا لهکبله دکندهار والی ته ارشا دا ت وفرمايل.

**دحمل ۲۰** : **عليا حضرته معظمه‌ملکه دبلخ** ولايت ته ديوه لنډ سفرپه قصد هغه ولايت تهروانه شوه .

**دحمل ۲۱** : معظم ټولواك همايونـی اعليحضرت دسفرله خپلو ملګرو سره لهغرمی نهوروسته په څلورو بجو اوپنځهويشتودقيقو پهکندهار نومی سلطنتی الوتکه کښی لـه کندهار څخه مزارشريف تهورسيدل .

**دحمل ۲۲** : معظم‌ټولواك‌همايونی‌اعليحضرت له غرمی نهوروسته دشبرغان دجنوب لويديځ په ديرش کيلومتری کښی دطبيعی ګازدکشف دنوی ساحی دلومړی کو هی ازمو ينـی پرانيستلی .

**دحمل ۲۳:** معظم‌ټولواك‌همايونی‌اعليحضرت او علياحضر ته معظمه ملکه دورځی پهڅلورو بجو او څلويښتو دقيقو دخلم دولسوا لـی څخه هليکوپتر پهواسطه کندز تهورسيدل.

**دحمل ۲٤:** دمازيګر په پنځوبجو دغاښونو دجوړولو دکلينيك پهوداني کی درو غتيادوزير پوهاند دوکتور محمد ابراهيم مجيد سرا ج لهخوا دغاښو نودطب تعليمی مرکزپرانيستل شو .

* **معـظـم هـمـا يـو نی اعليحضر ت** او علياحضر تی معظمی ملکی دکندز دشيرماهی ددښتی دور شو څخه کتنهوکړه .

**دحمل ۲٦ : معظم تو لوا ك همايونــــی** اعليحضرت او علياحضرته معظمه ملكه لــه خپلو دسفر له ملكرو سره دهيوا د ځينــو ولايتو ته دمسافرت نه وروسته لهغرمی نــه وروسته **پهيوه بجه او پنځهويشتو دقيقو په** كندهارنومی **سلطنتی الوتكه كښیپهخیره سره** كابل ته را **ورسيدل .**

* **دحمل ۲۷ :** افغانستان اوس دوه زره او شلور كيلو متره پهبين المللی سو په لويی لاری اودپنځلس زرو كيلومترو پهشا وخوا كښی دوهمه دريمه اوڅلور مهدرجه خا مه سړكونه لری.

**دحمل ۲۸ : دكـولرا دناروغی پــه ضـد** دمجادلی سيمينار تر غرمی دمخه درو غتيا د وزارت دمعين پوهاند دكتور عبدالله عمــر لخوادعامی روغتيا په موسسه كی پرا نستل شو .

* دننگرهار ولايت **په مركز جلال آبادكــی** دهغه ځای دمخابراتو دمديريت له خوايوسل لينه نوی سويچ بورد نصب او په كـا ر **ولويد .**

دحمل ۳۰ : دآهو دبوتو فابريكی دتيركال په اوږدو كی دپنځلسو مليونو او دریاتيازره افغانيو په بيه **يولك شپږ اويازره شلورسوه** اودری شپيته جوړه بوټان توليدكړيدی.

* پهكابل كی دهند دجمهوری دولت نوی لویسفير ښاغلی **كال مهتاخپل اعتماد ليــك** لهغرمی نهمخكښی پهيوولسو بجو ددلكشا په مانی كیدمعظم تولواك همايونی اعليحضر ت حضورته وړاندی كړ .

* په كابل كی دجاپان نوی لوی سفيــر ښاغلی كنجی ناكاو لهغرمی نه پخوا پهيوولسو بجو اوپنځلسو دقيقو خپل ا عتماد ليــــك ددلكشا پهمانی كیدمعظم تولواك همايو نــی اعليحضرت حضور تهوړاند كړ.

**دثور ۱ :** دكابل پهدربار كښیدالمغرب نوی لوی سفير ښاغلی مهدی **عبدالجليل** له غرمی نهپخوا **پهيو** ولسو بجو خپل اعتماديك له معمو لو تشريفاتو سره سم دمعظمتولواك **همايونی** اعليخضرت حضورته ددلگشا په مانی كښی وړاندی كړ.

* پهكابل كی دسويډن نوی لویسفير ښاغلی **كونت گوستاف** بوند غرمه پهدوولسو بجو خپل اعتماد ليك پهمعمو لو تشريفا تو سره ددلكشا پهمانی كښی دمعظم تـولـواك همايونی اعليحضرت حضورته وړاندی كړ .

**دثور ٤ : همايونی معظم اعليحضرت دپكتيا** دولايت دكتلو دپاره سهار دهيليكوپټر پــه وسيله خوست ته تشريف يوړ.

دشهرياری ذات دمخه ښی دپاره صدراعظم ښاغلی نور احمداعتمادی دكابل په **هوا** يـی ميدان كښی حاضر ؤ . **دهمايونی معظــم** اعليحضرت دسپرلی هيليكوپټر دغرمی نــه مخكښی **په ۹ بجو** اواتو دقيقو دكابلدهوايی ميدان څخه دپكتيا پهنيتپورتهشو.

* شاهانه ذات خوست ته درسيدو پهوخت كی دپټی پهپريكو لو اودشاهانه په حــق پالوونكی لاس سره يی دمخصوصی ټنی پــه فشار سره دځښلو دصحی اوبو پــر و ژه پرانيستله .

**دثور ٥ :** معظمولواك همايونیاعليحضرت دپكتيا له ولايت څخه لهدوه ورځنی كتنی نه وروسته لهغرمی پهشپږ و بجواوځلويښتــو دقيقو لهخيره سره شاهی ارگ تهراورسيد.

**دثور ۸ :** دهرات دمباركی خر قیدنوی ودانیی جوړولو چاری چه دبنست ډبره يــی زمونږ ددیانت پالوونكی پا چا همايونــی اعليحضرت په لاس ايښو دلـه شوی و ه بشپړی شوی .

*معظم تولواك همايونی اعليحضرت دماښام په اووبجو دمجارستان دخارجه چارودوزارت معين ښاغلی هولی دگلخانی په مانی كـــی شاهانه حضورته ومانه .

**دثور ۹:** دافغانستان دپاچاهی دولت اود مجارستان دولسی جمهوريت ترمنځ دفرهنگی همكاری تړون دخارجه چارو په وزارتكښی لاسليك شو.

**دثور ۱۰ :** دمجارستان دخارجه وزارت معين دمعظم تولواك همايونی اعليحضر ت په حضور دمشرف كيدو پهوخت كی دهغههيواد دجمهور رئيس ښاغلی **پال** لوسونشی بلنــه وړاندی كړيده.

معظم ټولواك همايوني اعليحضرت دغه‌بلنه په خوښۍ سره منلې ده چه‌په راتلو نکی کال کې په‌یوه مساعد وخت کې به‌مجارستان ته مسافرت وکړي .

* دکرنې او اوبو لګولو دوزارت لــه خوا دکابل، داصلاح شوو ميوو څه دپاسه شپږ ديرش زره نيالګي په‌مرکز کې‌خلکو ته‌ورکړی شویدی .

* د کندهار پــه ښار کې تــول ددری زره کیلواټه برښنا په ظرفیت سره دبـرښنا د انرژی دتولید دوی نوی دستګاوی په کــار واچول‌شوی .

**دثور۱۱:** دراډيو افغانستان دوېری لنډ ی څپې دستګاه یاو کاوی نوی ودروله شوه د ډیری‌لنډی څپې په ۱ر۳ مترمساوی په ۱ر۹٦ میګا سایکل سره یی دراډیو افغانستان‌لومړی پروګرام په امتحانی ډول سره خپورکړ.

**دثور ١٤ :** دوزيرانو عالی مجلس دتجارت دوزارت په‌تشکیلاتو کښی دپانګی اچـولو د دارالانشاء دعمومی مدیریت په نامه دیو ی اداری تاسیس کیدل منظورکړیدی .

دغور ولایت دمرکز چغچران دګر نــــبی فارم چه‌دحکومت دهدایت په‌اساس په دو ه سوه جریبه مځکه کی جوړ شویدی دغــو ر دوالي ښاغلي محمد نعيم پرکی له خــو ا پرانیستل شو .

**دثور ١٥ :** والاحضر تی شهزادی بلقیس دپښې په‌پری کولو سره دښکلوونکو ګلا نو نندارتو ترغرمی وروسته په دوو بجو ا و دیرشو دقیقو دانتر کانتی ننتال هو ټــل په‌کندهار نومی سالون کی‌پرانست .

**دثور ١٧ :** داسلام دستر پیغمبرحضرت سرور کاینات صلی الله علیه وسلم دمیلاد مبارکه ورځ په‌ټول هیواد کی و نمانځــل شوه .

دحضرت سرور کاینات محمد مصطفــی صلی‌الله علیه واله وسلم دمبارك میـلا د په‌مناسبت دعدلیه وزارت داوقافو دریاست له خوا ددلکشا په چمن کی یوه لویه غونډه جوړه شوی وه .

**دثور۱۸:** دکانو او صنایـعو دوزارت د پیشنهاد په‌اساس دهغه وزارت دډبرو دسکرو دایستلو ریاست ددولتي تصدی په‌موسســه بدل شویدی اوهغی اساسنامه د شمال دډبرو دسکرو دریاست په نامه په دی وختو کښی دوزیرانو له عا لی مجلس څخه تیــر ه شویده .

* دفاریاب دو لایت ددولت آباددولسوالی اساسی پل دفواید عامی دوزیر انجنیرمحمد یعقوب لعلی لخوا پرانیستل‌شو.

**دثور ۲۰ :** دپښتو نستان ستر مشر خان عبدالغفار خان دخپلو صحی معایناتو دپاره‌د ننګرهار څخه کابل ته تشریف‌راوړ .

**دثور ۲۱ :** معظم ټولواك‌همایونی‌اعلیحضرت قاضی القضات پوهاند دکتور عبد الحکیــم ضیایی اودستری محکمی قاضیان دکتور ولید حقوقی ، مولوی عبدالله صافـــی دولایاتــو د ۲۲ محکمو رئیسان او دقضایی دپلټنې او تدقیق دګرو پونو رئیسان ترغرمی وروسته‌په یوه بجه دګل خانی په‌ماڼۍ کی‌شا ها نــه حضورته ومنل.

**دثور ۲۲ :** دافغانستان د شا هی‌دو لت اوبلغاریا دخلکو دجمهور یت تر منځ دهوایی حمل ونقل موافقه دملکی هوایی ریاست پــه ودانۍ‌کی لاسلیك شوه.

**دثور ۲۳ :** یوسلو اته ټنه‌غنم چه‌دهرات دولایت دکرخ دولسوالی په‌مربوطاتو کښی د احتکار په‌قصد ذخیره شوی وو داحتکاردقانون له‌مخی دهغه ولایت دارزاقو اوعامه اړتیا وُ داداری ګدام ته تحویل شویدی .

**دثور ۲۵ :** دننګرهار دولایت دکا مــی په ولسوالی کی دقبایلو روغتون دقبا یلـو دمستقل رئیس سید مسعود پو هنیار پــه واسطه سره پرانیستل شو.

* دنباتی فرشی پروژه چه‌په ۱۳٤٥ کال کی یی لمړنی مطالعات شروع شو ی‌وه ا و مقصد یی دټولو خودرویو نباتا تو لکه‌څنګلونه ورشوګانی اودللمی کښتونو دللمی باغونواو ډول ډول کښتونو دودی دسیمی وټاکل اوطبی صناعتی نباتاتو احصائیه اونورو څخه عبارت دی دکرنی په وزارت کی پرانیستل شوه .

**دثور ۲٦ :** شهریاری ذات دښاغلـــی اعتمادی دحکومت استعفا ومنله.

## گورنۍ خبرونه

صدر اعظم ښاغلي نور احمد اعتمادی له غرمی نه‌وروسته په‌دری نیمو بجو د خپل حکومت استعفی د گلخانی په ما نۍ کې دهمایونی معظم اعلیحضر ت حضو ر ته وړاندی کړه.

* درضا کارو میر منو دټـو لـنـې دعالی رئیس والاحضرتی شهزادی بلقیسی دهدایت په اساس یوه اندازه دوا او جامی دیو شمیر بند یانو او مستحقینو ته وویشلی شوی.

*دنجونو ښارندوی عالی او افتخا ر ی رئیسی والا حضر تی شهز ادی مـریمی د ښارندوی دشپاړ سم مسلکی کورس د۷۶تنو فارغانو تصدیق لیکونه دپغمان دپوهنی په کلوپ کی هغوی ته وو یشل .

**دثور ۲۷ :** دروغتیا وزیر پوهاند دوکتور محمدابراهیم مجید سراج له‌غرمی شـخه‌دمخه د کـو چنیانو دروغتیا دښه تامین په غر ض ددکتور انو نرسانو روغتیا پالانو اواجتماعی کارکوونکو دروزنی یوکورس دعامی رو غتیا په موسسه کی پرانیست .

**دثور ۳۱ :** ۱۳۴۹ د ۱۳۵۰ کال په‌کمپاین کښی ۳۲۵تنه اصلاح شوی غنم‌دبلخ دولایت کروند گرو ته ورکړ شویدی.

**دجوزا لومړی :** ددرونتی دکبانو په پروژه کی‌سږکال دلمړی ځل له پاره دهارمون‌دترزیق په‌واسطه دگارپ ډولو کبانو مصنوعی نسـل نیول شروع شول .

**دجوزا ۲ :** دملکی هوانوردی رئیس او په کابل کی دکاناډا دغیر مقیم لوی سفیـر تر منځ دملکی هوانوردی په‌ودانۍ کی دبا ختر الوتنی لپاره دکانا ډایی الوتکو داخیستلو په مقصد دیوملیون دوه لکه او پنځه اویاز ره ډالرو دپورتړون لاسلیك شو.

* دآریانا افغان هوایی شرکت یـو ه ۷۲۷ بوئینگ الوتکه په‌دوه ملیونه اته لکه‌او نوی زره ډالره له یوی امریکایی کمپنـۍ شخه‌نوی واخسته .

**دجوزا ـ۳ :** دلوگر ولایت دمرکز دنو ی ښار دجوړولو کرښی دهمایونی اعلیحضر ت دعمر داوږدوالی او دهیواد دوړاندی تگ په دعاسره دخاصو مراسمو په تر خ کی‌واچولی شوی .

**دجوزا ـ۵ :** دفاریاب دولایت دمر کزمیمنی دښار دخښتلو دصحی اوبو دشبکی پرو ژه تراستفادی لاندی راغله .

**دجوزا ـ۶ :** دجوزا شپږمه دگران هیواد دخپلواکی دبیرته اخستلو ددری پنځو سمی کلیز ی سره برابره ده نوپه همدی مناسبت په‌ټول هیواد کی‌عمومی رخصتی ده .

* جهانی بانك دخان آباد داوبو لگو لو دپروژی له‌پاره پنځه ملیونه ډالره پورمنظور کـړ .

**دجوزا ـ ۸:** دحیرتان دبند رپه سړ ك دقیراچولو کار مازیگر دفوایدعامی دو ز یر انجنیر محمد یعقوب لعلی له خوا پرانستل شوه .

**دجوزا ـ۹ :** والاحضرت شهزاده احمدشاه په‌یوولسو بجو او شلو دقیقو له اروپا شخه وطن ته راستون شو.

په اوومه نیټه دصحی معاینو لپاره اروپاته تللی ؤ .

**دجوزا ـ ۱۱ :** دحوزوچاکلیټونواوبسکوټونو دجوړولو یو شرکت ددوو ملیو نو افغانیو په لومړنۍ پانگه دیوشمیر سوداگر و له خـوا دهرات په ښارکی تاسیس شو.

**دجوزا ـ ۱۵ :** دجاپان ولیعهدوالاحضر ت اکی هیتو اودده ماندینه والاحضرته‌میچیکوله غرمی نه‌وروسته په دوو نیموبجو په‌مخصوص الوتکه کښی کابل ته‌راورسیدل .

والا حضرت ولیعهد اوماندینه‌یی‌دوالاحضرت شهزاده احمد شاه په بلنه په‌رسمی ډ و ل افغانستان ته‌راغلی دی .

**دجوزا ـ ۱۶ :** دارچی داوبو لگولو پروژه ددولت په انکشافی پروژو کی شا مله‌شوه.

**دجوزا ـ۱۷ :** دبغلان دقند جوړولوشرکت دهغه ولایت دجغندرو کروند گرو ته یوولس ملیونه دری سوه شلور دیرش زره نهـه سوه افغانی دتقاوی په ډول ورکړی‌دی.

**دجوزا ـ ۱۸ :** معظم ټولواك همایونـی اعلیحضرت دغرمی په دوولس نیمو بجو پـه ایتالیه کښی افغانی لوی سفیر دکتـو ر عبدالظاهر دشاهی ارگ دگل خانی په ماڼی کښی خپل حضـور ته ومانه او دکابینی په جو ړولو یی موظف کړ .

**دجوزا ــ۱۹ :** دشلو مليونو ډنمارکـــی کرونو دکريدت موافقه‌ليك چه‌دوه اعشار يی اووه مليونه ډالره کيږی دافغـانستان ا و ډنمارك دحکومتو ترمنځ په‌کابل کښی لاسليك شو .

**دجوزا ــ ۲۰ :** دجاپان وليعهد والاحضرت شهزاده اکی هيتو اوودده محترمه مانديـنـــه والاحضرته ميچيکو دورځی په‌دريو بجـــو او اوه ديرشو دقيقو جاپان ته‌لاړل .

**دجوزا ــ ۲۲ :** دنيپال پاچا اعليحضرت مهندرا دمعظم همايونی اعليحضرت په بلنـه ديوی رسمی کتنی له پاره دورځی په ۱۱بجو اولسو دقيقو کابل ته راورسيد .

معظم همايونی اعليحضرت ،اعليحضر ت مهندرا ته الوتکی ته‌نيژدی ښه‌راغلی ووا يـه او استقبال يی کړ.

**دجوزا ــ۲٤ :** دمور ورځ دعلياحضر تی معظمی ملکی په پيغام سره په ټول هيواد کښی ونمانځل شوه .

* دنيپال پاچا اعليحضرت مهند را او

دده ملګری غرمه په دوولسوبجو او شلــو دقيقو ديوه دوستانه مسافرت نه وروسته له کابل څخه شوروی اتحاد ته روان شول.

**دجوزا ــ۲٦ :** دمرکزی اکسريز دستګاه چه ددولت دبودجی څخه ددولسو مليو نـــو افغانيو اوددوه لکه ډالر وپه لګښت جو ړ ه شويده دمازيګر په پنځو بجو دصدارت د لومړی مرستيا ل ښاغلی عبدالله يفتلی له خوا دپټی په‌پريکو لوسره پرانيستله‌شوه.

**دجوزا ــ ۲۷ :** په‌کندهار کښی دکرنـی دپراختيا دبانك نمايندګی د هغه و لايـت له‌باغ لرونکو اودمځکو له خاوندانو سـر ه مرستی په‌غرض په تيرو دوو هفتـو کښی ديارلس واټر پمپونه چه دجنګلك په‌کارخانو کښی جوړ شويدی بزګرو ته ويشلی‌دی.

دجوزا ــ ۳۰ : **معظم** ټولواك همايونـــی اعليحضرت اودافغان دشاهی اردو ا علـــی سرقومانندان ترغرمی دمخه په‌نهو بجو دراکت دقواوو دلار ښودل شوو راکټونو تمر ينا ت او تطبيقات دمقر دولاړ و اوبو په‌دښته کی وکتـــل .

**دجوزا ــ۳۱ :** دننګرهار دنساجی‌دسهامی شرکت دفابريکی درنګو لو دستګاه چه‌دپرس په ماشينـ نو باندی مجهز دی **په‌کارولويده.**

**دسرطان ــ ۲ :** **دافغانستان‌او شوروی‌اتحاد** ترمنځ د۱۹۳۱ کال دجون د۲٤ د(۱۳۱۰ کال دسرطان ددوهمی ) نيتی دبيطر فی او نـــه تيری دتړون دڅلو يښتمی کاليزی په‌مناسبت دمعظم ټولواك همايونی اعليحضرت له‌حضوره دشوروی اتحاد دعالی شورا درئيسه هيـــئت دصدر نيکولای پودګورنی په‌عنوان مسکو ته‌يو پيغام استول شويدی . همدارنګه دنيکو لای پودګورنی لخوا دهمايونی معظم اعليحضرت په عنوان په‌همدی مناسبت يو پيغام استول شويدی .

* دمعظم ټولواك له حضور څخه دمشرانو دجر ګی څوتنه انتصا بی غړی و ټـا کـــل شـــو ل .

**دسرطان ــ٤ :** دپروان داوبو لګلودپروژی داوبو دبرښنا دستيشن دودانی دبنست ډبره کيښودله شوه .

**دسرطان ــ۷ :** علياحضر تی‌معظمی ملکی دمازيګر په شپږو بجو دميرمنو په ټو لنـه کی دکوچنيانو او ميندو دحمايی مرکز دپټی په پريکو لو سره پرانيست او وريسی يی يی دهغی موسسی وړکتون او دشيدو دخوړلو ځای وکوت .

* بی وزلـو ناروغـا نو تـــه **ته دمرستی** لپاره درضاکارو ميرمنو دټولنی دعالی‌رئيس والاحضرتی شهزادګی بلقيس دهدايت پـــه اساس يواندازه درمل دټولنی له‌لاری دننګرهار دولايت دعامی رو غتيا آمريت ته‌واستـو ل شو يده .

**دسرطان ــ۱۰ :** دنړی دخوراکی موادود دموسسی دخورا کی موادو دمرستی عملياتی پلان چه‌دهغی په موجب به څوار لس نيـم زره ټنه غنم دپنځوزرو ټنو په شاوخوا کی پوډری شيدی اودری زره ټنه په‌شاوخوا کـی پوډری شيدی اودری زره ټنه نباتی غوړی د ميندو او کوچنيانو دساتنی مـــرکز نـو او دوړکتونو دفرعی **او اساسی صحی مرکزونو** مرسته کوی دعاملی رو غتيا په موسسه کی لاسليك شو .

## کورنی خبرونه

**دسرطان ۱٤ :** دولسی جرگی په عمومی غونډه کښی چه سهار په نهو بجو عبدالظاهر داساسی قانون د۸۹ مادی ددوهمی فقری له حکم سره سم دخپل حکومت تګلاره اوغړی د ملت نمایندګانو ته معرفی اووړاندی کړل .

دولسی جرګی رئیس پوهنوال دکتور محمد عمروردګ دهغی جرګی دتصمیم په اساس دتګ لاری دوړاندی کولو او داعتماد را یودغوښتلو لپاره دحکومت چمتو وا لی دولسی جرګی غړیو ته څرګند کړ.

**دسرطان ۱٦ :** دولسی جرګی په غونډه کښی چه دهغی جرګی درئیس پوهنوال دکتور محمد عمروردګ په مشری جوړه شوی وه موظف صدراعظم دکتور عبدالظاهر دکابینی له غړیو سره ګډون کړی ؤ اودولسی جرګی وکیلانو داساسی قانون د۸۹ مادی ددوهمی فقری په اساس دموظف حکومت په کړ نلاره بحث اودنظر یو څر ګندول یی شروع کړل.

* دهغه ستر سیلا وپه اثر چه دباجګاه په ناوه کښی راغلی (٤۳) تنه مړه شوی ددغه ستر سیلا و علت ځینی خلك باران او ځینی دتکه خانی دطبیعی بند نړیدل بولی.

**دسرطان – ۲۱ :** دبریکوت ژوره خاچه له هغی ځا څخه په څلیرو یشتو ساعتو کی د څښلو دری زره او څلور سوه مکعب متره صحی اوبه لاس ته راځی دروغتیا دوزارت د معین پوهاند دوکتور عبدالله عمر له خوا پرانیستله شوه او تر استفادی لا ندی راغله .

**دسرطان ۲٦ :** قاضی القضات پوها ند دکتور عبدالحکیم ضیایی دنړی دقاضیانو د ټولنی په جرګه کښی دګډون په غرض سهار په شپږو بجو او پنځلسو د قیقو بلګراد لــه روان شو .

**دسرطان ۲۷ :** دافغانی سری میاشتی د ټولنی دعالی رئیس والاحضرت شهزاده احمد شاه دهدایت په اثر داو بورسو لو ټانکرونه موظف شویدی چه دسره رود دولسوا لی دخلکو له پاره دڅښلو اوبه ورسوی.

دسرطان ۲۸ : والاحضرت شهزاده محمد داؤد پښتونیار دامریکا دمتحدو ایالاتو څخه دتحصیل دکلنی رخصتی په مناسبت کابل ته تشریف راوړ.

**دسر طان ۲۹ :** والاحضر تی شهزاد ګی بلقیس دملا لی دلیسی د۱۳٤۹ کال دفا ر غ التحصیلا نو بری لیکو نه تر غرمی وروسته په داسی حال کی چه والا حضرت شهزادګی مریمه دپوهنی دوزارت لومړ ی معین دثانوی تدریسا تو رئیس اودنو موړی لیسی استادان هم حاضروو هغوی ته ورو ویشل.

**داسد – ٥ :** صدراعظم دکتور عبدالظا هر له غرمی نه پخوا په یو ولس نیمو بجو صدارت ته لاړ او په کارئی پیل و کړ .

* دبلخ د و لایت مر کز د شور تیپی په و لسوالی کی دیوه صحی اساسی مرکز دودانی د بنسټ ډبره د هغه ځای د و لسوا ل لخوا کیښو دل شو ه .

**داسد – ۱٦ :** د صدارت دمقام په هدایت دپلان وزارت ګمارل شوی دی چه په ممکنه چټکتیا سره د هیواد داقتصادی اواجتما عی انکشاف په هکله د څلورم انکشافی پلان د تدوین او تر تیب په باب د خپلواجرآآتو ر پوټ د صدارت مقام ته وړاندی کړ ترڅو په د غه بر خه کی لازم اقدامات وشی.

* دجزا یی قانون د اجرا آ تو په کابل دولایت په محبس کښی یو و یشت تنه نار ینه او ښځی لــه بند څخه خو شی شول .

**داسد – ۱۷ :** دغز نی ولایت دجغتو دولسوالی د صحی اساسی مر کز دودانی دبنسټ ډ بره د هغه ځای دوالـی ښاغلی روشن لخوا کیښو دل شوه .

**داسد – ۲۲ :** د هیواد داقتصادی اومالی حالت د مطالعی تنظیم انسجام او ښه وا لی دپاره د همایو نی معظم ا علیحضرت پــه منظوری او دوزیرانو دعالی مجلس په تصویب سره یوه عالی اقتصادی کمیته د صدراعظم دکتور عبدالظاهر په مشری جوړه شویده .

**داسد – ۲۳ :** ددهمزنګ دبریکوت جا مع جومات دقرآن عظیم الشان د څو ا یتو نـو په لوستلو سره پرانیستل شو .

داسد ـ ۲۳ : دپایتخت ورځپا ڼه لیکونکو داطلاعاتو او کلتور دوزیر سره دهغه وزارت په کلوپ کې و کتل .

داسد ـ ۲۳: دخیر خانې مینې د ښځینــو داوبو پرو ژه چه د څلور ملیو نو ا فغانیو په لګښت جوړه شوی ده مازیګر پرانیستل شوه .

داسد ـ ۲۵ : دجاپان حکو مت در یــو لکو ډالرو وریجو او دوو لکو ډالرو کیمیاوی سره افغا نستان ته مرسته کوی .

* داطــلا عا تــو او کلتــور وزار ت داساسی قانون د ۳۱ مادې په پیروی او په هیواد کښې د زیاتو خپرونو د تشو یق پــه غر ض د څلورو هفته ایزو جریــد و د وو مجلو د خپرید لو او دیوی مطبعې د په کار اچو لو څخه چه امتیاز ئې له هغه و زا ر ت څخه غو ښتل شوی‌و مربو طو ځانګو ته خبر ور کړیدی .

داسد ـ ۲٦ : دشلو زرو ټنو یــوری داخیستلو موافقه لیك دافغانستان د بو ر ی دتصدی اوشوروی اتحاد دوستوك انتــو ك تر منځ په کابل کې د شوروی اتحاد په‌لوی سفارت کی لا سلیك شو .

داسد ـ ۲۷ : ۲۵۹۵ کیلوګرامه هغه‌چاقی تریاك دکابل دپو لیسو له خوا و نیول‌شول چه په یوه ذیل لاری مو ټر کی له ننګر هار څخه کابل ته راوړل کیدل .

داسد ـ ۲۸ : یو لك اوشل زره ډا لــره دملګرو ملتو مر کز اودهغی‌موسسی‌دانکشاف پروګرام اداری د افغانستان لپاره دمرستی‌په غرض تصویب کړل .

* د پــکــتــیا د ولایت د زر مـــت دولسوالی د بهشتی پل چه ددری ملیو نه او اوه لکه افغا نیو په لګښت شپږ پنځو س متره اوږ د جوړ شویدی د پکتیا دوا لی او عسکری قو ماندان ډګر جنرال محمد عیسی لخوا پرانستل شو .

داسد ـ ۲۸ : په کند هار کی د کــر نی دپرا ختیا دبانك لخوا دسر طان د میا شتی له نیمائی څخه تراو سه پوری د کند ها ر دولایت کروند ګرو او باغ لرو نکو ته داوبو دایستلو دوه او یا بمبی ویشلی شویدی .

داسد ـ ۲۹ : د هند دنما یندګا نودمجلس ر ئیس ښاغلی دهلون بلغا ریی ته د مسافرت په لاره کی په دری نیمو بجو کــابــل تــــه را و رسید .

داسد ـ ۳۱ : معظم همایونی اعلیحضر ت دهیواد دخپلواکی د بیا لا س ته را وستلــو د کالیزی په مناسبت د یو شمیر نا رینه و او ښځو بندیانو د بند پاتی موده ښښلی‌ده.

دسنبلی ـ ۵ : دیکاو لنګك او سرخ‌پارسا دنو و ښارو نو ځا یونه د ښار جوړ و لــو او کور جو ړ ولو دانجنیر ا نو هیئات لخوا و تا کل شو ل .

دسنبلی ـ ۷ : دکو چنیانو ورځ د عــلیــا حضر تی معظمی ملکی په خاص پیغام سر • و نمانځل شوه .

* آفــغــا نستا ن ا و کــویــت یــو تړون لا سلیك کړیدی چه د هغه تړ و ن په اساس په افغا نستان د کویټ دکیمیا و ی سری د شر کت څخه پنځلس زره‌ټنه‌کیمیاوی لا س ته راو ړی .

دسنبلی ـ ۱۱ : دکابــل‌فاتح والاحضر ت مارشال شاه و لیخان غازی دکابل‌په صناعتی سیمه کی د نساجی دیوی فابریکی د بنسټ ډ بره کیښنو د له .

* دمعــظــم تو لوا ك هــمــا یو نـــی اعلیحضرت په هغو تلګرافی پیغا مونو کی چه دعر بی جمهو ریت سو ر یی او لیبیادجمهور رئیسانو په عنوان مخابره شویدی دوی ته دعربی جمهو ر یتو دفد راسیون د جو ړیدو مبارکی و یلی ده .

دسنبلی ۱۲ ـ داشرف المدارس‌دمدرسی دسړ کال ددوو لسو ټنو فار غانو بری‌لیکونه دکابل فاتح والا حضرت مارشال شاه‌ولیخا ن غازی لخوا وویشل شول .

دسنبلی ۱۳ ـ د هغو مځکو څخه چه‌زیاتی او به لری د ګټی ا خستلــو او دکــرنی د پراختیا پرو ګرام د وزیرانو دعالی مجلس څخه تیر شوی او تطبیق ئی شروع شو .

دسنبلی ۱٤ ـ دسید کرم دولسوالی‌صحی مرکز دودانی د بنسټ ډبره د پکتیا د والی او عسکری قو ماندان ډګر جنرال محمدعیسی له خوا کیښنو دل شوه .

**دسنبلې ۲۰ :** داسد دمیاشتې لـه اول نه ترسنبلې دشلم پورې څلور زره اووه‌سوه او پنځه نوی ټنه انګور له کندهار څخه هند ته صادر شوېدی .

* دداخلـه وزیر ښاغلـی امـا ن الله منصوري له خوا د هغه وزارت په سیا لـون کې دوالیانو یو سیمینار پرا نستل شو .

**دسنبلې ۲۱ :** دوالیانـو دسمینار پـه دو همه غو نډه کې په و لا یاتو کې د غـلې په‌ویشلو او نورو مو ضو عاتو با نـد ې خبرې و شوې .

**دمیزان ٤ –** والاحضرتې خاتول ،واحضرتې شهزادې بلقیس او والاحضرتې شـهزادې مریمې دورځې په دریو اوپنځه څلویښتـو دقیقو دامید دنساجې دفابریکې بیلې بیلـې برخې په داسې حال کې ولیدې لـې چـه دمیرمنو ټولنې‌رئیسه‌میرمن صالحه‌فاروق‌اعتمادي اویوشمیر رضاکار ې میرمنې دوالاحضرا تو سره ملګرې وې .

**دمیزان ٥ :** په کابل‌کښې‌دامریـکې دمتحدو ایالتو لوی سفیر ښاغلي رابرت نیـو من افغا نستان ته دامریکې دسل زره ټنه غنمو دورېیا مرستې څخه هغه وزار ت ته رسمي خبرورکړ .

**دمیزان ٦–** دروغتیا وزیرپوهاند دکتو ر محمدابراهیم سراج وویل دڅلورم پنځه کلن انکشافي پلان په‌موده کې به‌په ټول هیوادکې درې سوه صحي اساسي مرکزونه چه هریو به‌یې دمیندو اوکوچنیانو دحمایې مر کـز هم‌ولري جوړشي .

**دمیزان ۷ –** دغوړیو دتولیدولو فا بریکه دتجارت دوزیر پو هنوال محمد عارف غـوثي له خوا پرانستله شوه . دغه فابریکه په‌کال کې دموټرو اوماشینواته زره‌ټنه غوړې‌تولیدوي چه داخلي اړتیاوې لیرې‌کوي.

**دمیزان ۸ –** دوه‌لکه نهه ویشت زره اته سوه اونهه ویشت مربع متره غالې دسږکال په‌لومړیو شپږو میاشتو کښې دغالـیو د صادرو نکو داتحاد یې په واسطه خـار ج ته‌صادرې شویدی .

**دمیزان ۱۰–** په‌راډیو افغانستان کـې د اوزبکي ، ترکمني، پشه‌یي او بلو چي محلي ژبو لمړی پروګرام وروسته تر غرمې پـه پنځه نیمو بجو داطلاعاتو اوکلتور د و زیر ښاغلي محمد ابراهیم عباسي په پیـام‌سره شروع شو .

**دمیزان ۱۱–** دخدیجه جوزجاني منځنـې ښوونځې دپوهنې دانکشافي پلان په اسا س لیسې ته جګ شو.

**دمیزان ۱۲ –** دکوچنیو عام المنفعه‌پروژه په‌لړ کې چه‌دفاریاب په ولایت کـې تـیر اجرالاندې نیول شوې دې دشیرین تګـا ب دولسوالي او المار دعلاقه دارۍ په بیلوبیلو کلو او دپښتون کوټ دولسوالي دتور پاختو په‌کلي کې دپنځو سو څاګانو دکیندلو کار شروع شو .

**دمیزان ١٤–** دافغاني سرې میاشتې‌دټولنې دروغتیا دخدمتو مطالعاتي تیم لو مـړ نـې غونډه له غرمې نه پخوا په لسو بجو جوړه شوه .

د افـغـا نستان دخـا رجـه چـا رو وزیر دملګرو ملتو له عـمـومي سر منشي سره وکتل.

په‌دغه کتنه دځینو بین المللي مسئلـو و افغانستان او ملګرو ملتو دموسسې دروابطو په‌باره کښې خبرې وشوې .

**دمیزان -۱٥–** دوالاحضر تې شهزاد ګې بلقیسې دهدایت په اساس دافغـانستان د لاسي صنایعو دخر څـلاو د بازار له در که پنځو س زره افغاني دوینو بانک ته انتقال شوې دې .

د قضا یـې چـارو پـریـو سـلـو پنځه ویشتو فقرو باندې دخبرو لپـا ر . دمرکز اوولایتونو دمحکمو درئیسانو سیمینار دقاضي القضات پوهاند دکتور عبد الحکیـم ضیایي په‌وینا سره ددارالامان په ودا نـې کښې پرانیستل ښو.

**دمیزان ۱۸ –** دکـابل فاتح وا حضر ت مارشال شاه‌ولیخان غازي په‌لندن‌کې دصحي معایناتو دبشپړ ولو او معالجې دسرته رسولو څخه وروسته کابل‌ته راستون شو.

* وا لا حضر تـې شهزاد ې بلقیسـه والاحضرت جنرال سردار عبدالولي د ایـران دشاهنشاهي جشن کې دګډون په غرض‌هغه هیواد روان شول .

**دميزان ۲۱ :** والاحضرته شهزادي بلقيسه او ددی ميره وا لاحضرت جنـــرال سردار عبدالولی له ايران څخه کابل ته‌بير تــــه را غلل .

**دميزان ـ۲۲** سلطنت د مقام و کيـــل والاحضرت شهزاده احمد شاه له غرمي نه‌مخ کی‌په لسو بجو پخپلو ارشاداتو داسا ســی قانون دخلورمی مادی دحکم سره سم دشوری دديارلسمی دوری ددريم کال لـــو مړ ی اجلاس پرانيست .

* زمونږ دگران ټولواك هما يو نـــی اعليحضرت دنيکمر غه زيږ يدنی په مناسبت له غرمی څخه وروسته دبگراميو په ميـدا ن کی دسلطنت دمقام دو کيل وا لا حضـــر ت شهزاده احمدشاه اووالاحضرتی خاتول پـــه حضور دشمالی و لايتونو دبزکشی دټيمو نو ترمنځ دبزکشی ستری لوبی وشوی .

**دميزان ـ۲۳** دسلطنت مقام و کيـــل والا حضرت شهزاده احمدشاه غرمه پـــه دوو لسو بجو او پنځه دير شو د قيقـــی دهيواد دشمالی ولاياتو دبزکشی دټيمو نـــو رئيسا ن اوغړی چه دهمايونی معظم‌اعليحضرت دنيکمرغه زيږ يدنی دکاليزی په مـنا سبت دبزکشی دلوبو دپاره کابل ته‌راغــلـی د ی ددلکشا په بن کښی خپل حضورته‌ومنل .

**دميزان ۲٤ :** دسلطنت دمقام وکيل والاحضرت شهزاده احمدشاه بيگاپه شپږ نيمو بجودجاپان دامپراطور دوړور زوم اودهغه هيواد دسر ه صليب واك لرونکی نمايندہ ښاغلی کونو يی دگلخانی په مانی کی خپل حضو ر تــــه ومـا نه .

**دميزان ۲۵ :** دافغانی‌سری مياشتی دعالـــی رئيس والاحضرت شهزاده احمدشاه د هدايت له‌مخی به‌لس زره ټنه غنم اوپنځه زره ټنه جوار چه دافغانی سری مياشتی تو لنـــی‌ته دولســی چين د جمهور يــت د ســـر ه صليب لخوامرسته شويده دحکومت په وا ك کی‌به‌يی ورکړی .

**دميزان ـ ۲۷** والاحضر تی شهزادی مريمی دمرکز اوولايتونو ميوبينو ته يـــو شوتر يسايکلونه اودښځو دسنا تور يــــم نارونځانو ته جامی اوشيدی وويشلی .

**دميزان ۲۸** دسلطنت دمقام دو کيــل واحضرت شهزاده احمدشاه په ګڼون دروزی دمبارکی مياشتی په مناسبت دقرآن عظـــيم الشان ختم دشاهی ارگـك په جومات کـــی شروع شو .

**دميان ۳۰ :** دميزان دمياشتی‌داوه ويشتمی نيټی ترمازيگر ه پوری دبدخشان ، باميانو، غور، اروزگان ،وردګو ، نيمروز او بـادغيس ولايتونو څه دپاسه څلور زره اودری سو ه ټنه غنم استول شويدی .

**دميزان ۳۱ـ** ددوه سوه شپږ پنځـــو س مليونو شپږ لکه اودوه اويازره افغانيو پـــه وروستی پانگه‌سره دپانگی داچولودکميتی‌له‌خوا داورلگيد دجوړولو فابريکه منظور شوه .

**دعقرب ۳ :** دملگرو ملتو د تاسيس شپـږ ويشتمه کاليزه په ټول هيواد کښی دټو لنو اوغونډ و په‌ترڅ کښی ونمانځل شوه.

* دقرآن عظيم الشان ختم چه دسلطنـت دمقام‌دوکيل والا حضرت شهزاده احمدشاه په ګډون دروژی دمبارکی مياشتی په‌لومړی نيمه دتراويحو دنمانـځه پـه ضمن کښی پـــا ی ته‌ورسيد.

* دعلو مودپوهنځی استاد اودحيـو ا نو موزيم متخصص دکتور نومن وويل په‌افغانستان کښی ۱۵۰ زره ډوله حيوانات ژ و نـــد کـــو ی .

**دعقرب ۵ :** دصنعتی بانکونو هغه قانو ن چه پخوادشوری ددواړو جر گو اودسلطنت د مقام لخوا توشيح شوی‌ؤ په‌رسمی‌جريده‌کی‌په خپريدلوسره نافذ شو.

* دفارياب دولايت په‌مربوطا تو کـــی‌د محل دانکشاف اودغنمو په مقابل کی دکار د پروگرام لاندی په ٥٥ پروژو کی پنځلس‌زره تنه په‌کار لگيادی .

**دعقرب ۷ ـ** دافغانستان او شوروی‌اتحاد دنمايندگا نو ترمنځ دگرنی اوابو لگولـــو د وزارت دځارويو دروغتيا او توليد انستيتو ت دکتابخانی په سالون کی دوترنری دنو بتی کنفرانس اتم پروتو کول لاسليك‌شو.

**دعقرب ـ ۸ :** دملگرو ملتو دمـو ســـــی سرمنشی اوتانت شل زره ډالـــره او۸ زره استر لنگ پونډه يی دافغـــانستان لپاره د وچکالی سره دمقابلی په‌غـــرض تخصيص ورکړيدی .

* دفراه دولایت دشپین ډنډ دولسوا لـــی دلس بستره ایزرو غتون دودانـی دبنست‌ډېره دمغه ولایت دوالی ښاغلی محمد عا لـــم نوابی لخوا کښیښېودل شوه.

دعقرب ۱۰ : دوالاحضـر تـی شهـزاد ی بلقیس اووالاحضوت جنرال سر دارعبدالولی په‌بلنه دایران دپاچا وروړ او ددوی محترمـه ماندینه والا حضرته منیژه دیوی تفر یحـی مسافرت لپاره کابل ته‌راغلل .

دعقرب ـ۱۲ـ دخارجه چارو وزیر ښاغلی محمد موسی شفیـق دملګرو ملتو دعمومـی ټولنی دشپږ ویشتمی دوری په‌یوشمیر غونډو کی له‌ګډون اودخینو دوستو هیـوادو نو د خارجه چارو له وزیرانو سره له خبرو او د جهانی بانك او بین المللی وجهی صندو ن سره تماس شخه و روسته کـا بل ته‌راستون شـو .

* دشوری داستجواب په غو نډو کـــی حکومت ګډون وکـړ اودشوری په تا لا ر کی دوچکالی دعوارضو دمخنیوی په غرض د حکومت دعاجل پروګرام دشوری غړو تـــه توضیحات ورکول .

دعقرب ۱۵ : سږ کال ټول دشل زرو تنو په‌شاوخوا کښی انګور هـــنـــد ته صا د ر شول .

دعقرب ۱۶ ـ والاحضرت شهزاده‌احمدشاه دسلطنت دمقام وکیل او والا حضرتی خاتـول بیګا شپه په ۸ نیمو بجو دګلخانی په مانـی ی والا حضرت شاهپور غلام رضاء پهلـوی او ددوی ماندینه والاحضر ته منیژه پهلوای ی خپل حضورته ومنل اودشپی ډوډی یـی په‌سلطنتی میز باندی ورسره وخوړله .

دعقرب ۱۹ ـ دآسیایی انکشاف بانـك دبلـخ اوکامی داوبولګولو دپرو ژو دمطالعی لپاره ۳۲۹۰۰۰۰ ډالره و ړیا تخنیکی‌مرسته ورکوی.

دعقرب ۲۲ ـ معظم ټولواك همایونـــی اعلیحضرت او علیاحضرته معظمه ملکه لـه خیره سوه وطن ته راستانه‌شول.

دعقرب ۲۳ ـ دقرآن عظیم الشان دنازلیدو کـــا لیزه چه دروژی دمبارکی میاشتی له‌اووه ویشتمی شپی سره مصادفه ده دکابل‌پوهنتون دشرعیاتو دپو هنځی دجمنا ز یوم په تالار کښی په خاص اوستر محفـل کښی‌ونمانځل شوه.

دعقرب ۲۶ ـ دمعظم ټولواك همایونـــی اعلیحضرت لهٔ حضور څخه دسر دار اعلـی نښان په‌کابل کښی دایران ددولت لـــو ی سفیر ښاغلی محمود فرو غی ته‌چه‌په کابـل کښی یی دمامویت دوره پای ته رسید لی ده ورکړ شو.

* معظم ټولواك همایو نی اعلیحضر ت د هغو خاصو مهر بانیو له‌مخی چه‌په شا هانه رعیت‌پالنی لری دهیواد دمرکزاوولایتو دیوشمیر نارینه ؤ اوښځو بندیانو دبند پاتی مـو ده دکو چنی نیکمر غـه اختر په مناسبت ښښلی ده .

* صدر اعظم ښاغلی دوکتور عبد الظا هر د«خوابښی » دډرام ممثلین اودثقافت او هنر دریاست کار کوونکی ددغه ډرام دننداری په پای کی تقدیر کړ ل اووی ویل چه‌دخوابښی ډرام له‌یومهم اجتماعی پرابلم سره تما س نیولی اودهغه انتباهی نقش زموږ په‌اجتماع کی محسوس او څرګنددی .

دعقرب ۲۷ ـ همایونی معظم اعلیحضر ت د کـــو چـنـی نیکمر غـه اختر لـمونـــځ دسهار په لس بجو دشاهی اوګ په‌جومات کښی اداء کړ .

دقوس ـ ۳۰ : دافغانی سری میاشتی د ټولنی عالی رئیس والاحضرت شهزاده احمد شاه هدایت ورکړ چه دهیواد دلری ولایتونو وزلی ناروغان دعلاج لپاره دسری میاشتی په مصرف په الوتکه کښی مرکز ته راوستـــل شی .

* دبانکی اچولو کمیټی دپیګل او دباغی یو دستګاه منظور کړل .

دجدی ـ۱ : دسږ کال په نهو میاشتـــو کښی دری لکه څلور دیرش زره شپږ سو ه او دوڅلویښت مربع متره غالی دغالیو دصادر وونکی اتحادیی له خوا صادر شویدی .

دجدی ـ ۳: دنجونو په‌اوومویشتو لومړیو ښوونځیو کی سږ کال څه دپاسه دیار لس

زره تنه زده کوونکی په کلنیو ازموینو کــې بریالی شویدی .

دجدی ـ ٤ : دروان کال په میاشتو کښې دممیزو دخرخولو له مـدرکـه دوه سـوه او خلوینبت زره ډالره لاسته راغلی دی .

دجدی ـ ٥ : والاحضرت شهزاده محمود او دده محترمه میرمن والاحضرته محبو بـه غازی په لندن کی دلوړو تحصیلاتو له سرته رسولو څخه وروسته بریالی وطن ته راستانه شول .

* دحربی پو هنتون دفارغانو دشهادتنا مو دویشلو په تولنه کی ښاغلی صدراعظـــــم استادانو او فارغانو ته مدالو نه او جایــزې وویشلی .

دجدی ـ ۷: دوزیرانو عالی مجلس پـــه راډیو ، جریدو، سینماګانو، لوحو ،اودیوالونو او نورو وسایلو کښې دسګرټو او تمباکـــو اعلانونه منعه کړل .

دجدی ـ ۸: پنځلکه پنځه ویشت زره اته سوه او نولس پیکل پوستکی او څلیرویشت زره څلور سوه او څلورنوی بغنه پوستکـــی دسږکال په نهو میاشتو کښې اروپایی او امریکایی هیوادوته صادر شویدی .

دجدی ـ ۹ دآدم خان او دورخانی دفولکلوریك مشهور داستان دفلم سناریو چه پخوا دافغان فلم موسسه دهغه فلم دبرابرولو لپاره موظفــه شوی وه برابر شویدی .

دجدی ـ ۱۰: دوزیرانو عالی مجلس دبګرامیو دنساجۍ دفابریکی په پانګه کښې په سلـــو کښې زیاتوالی منظور کړیدی .

* دکرنی دپراختیا دبیړنی پروګرام پــه اساس سږکال دننګرهار په ولایت کښې څه دپاسه یولکو شل زره جریبه مځکه کښـــی مکسیپك اوسنو لیکا اصلاح شوی غنم کړل شویدی .

دجدی ـ ۱۱ : دوه زره پـنـځـه سوه او دیارلس ملیونه مکعب متره طبیعی ګاز پـــه ۱۹۷۱ عیسوی کال کښې دجوزجان دولایـت دخواجه ګوګردك له سیمی څخه شورویاتحادته صادر شویدی .

دجدی ـ ۱۲ : په روان کال کیدهیوادپه مرکز او ولایتونو کی داوو روغتو نـــو او اکسریز ونو ددستګا وو ودانیو دجوړولـــو چاری بشپړی شوی‌دی او دنورو دولســـو روغتونو دوادانیو دجوړیدلو چاری په سلوکی په‌زیاته اندازه سره مخ په وړاندی تللی‌دی.

* داطلاعاتو او کلتور وزیر ښاغلی عباسی لخوا په غزنی کښې یوه کتابخانه پرانستل شوه او دابو ریحان بیرونی نوم وربـاند ی کیښول شو .

دجدی ـ ۱۳ : دننګرهار دناوی دپراختیا په پروژه کښې اوس څه دپاسه دوه ویشت زره جریبه مځکه چه دکښت دری دوری یی تیری کړی او ګټه اخیستل ورڅخه شرو ع شویدی مستحقینو ته دورکولو له پـاره‌تیاره ده .

دجدی ـ ۱٤: یولکو دری زره دوه سوه او خلوینبت دوبرو سکاره‌دسږکال په نهومیاشتو کښې دکرکر ، اشپشتی او دره صوف لـــه کانو څخه ایستل شویدی .

دجدی ـ ۱٥: دکابل ګمرك دپنځوسم کال دنهو میاشتو عایدات څه دپاسه یو زرو او ه اتیاملیونو افغانیو ته رسیدلی دی .

دجدی ـ ۱۷ : دروان‌کال دکمپاین‌دشروع څخه تر ۱٦ دجدی پوری دبغلان دقند جوړولو په فابریکه که دیوپنځوس‌زره اتـه سوه او څلوینبتو بوجیو سره معادل څلور زره شپږ سوه پنځه شپیته ټنه او شپږ سوه کیلوګرامه بوره تولید شویده .

دجدی ـ ۱۹: په ۱۹۷۱عیسوی کال کښې یو لکو څلوینبت زرو ټنو تور ستانو دهیواد بیلی ،بیلی تورستیکی سیمی کتلی دی .

دجدی ۲۰ : دپښتو نستان دمختلفو سیمو ۲۲۹ تنه حاجیان دوچی له لیاری بیت اللــه شریف ته‌ولیږل شول .

دجدی ـ ۲۲ : دپاکستان جـمهور رئیس ذوالفقار علی بوتو دیوی لنډی دوستانه کتنی په مقصد کابل ته راورسید .

دجدی ـ ۲٤: سږ کال یوملیون او اوه‌لکه دقره‌قل پوستیکی لندن ته صادر شوه .

دجدی ۲٦ : دملګرو ملتوانکشافی پروګرام دبناو دپراختیا له په نظر کښې لیولو مره

دکابل دښار داوبو رسولو دعمومي پلان او کاناليزاسيون دجوړولو او دکشافاتو دلرى کولو دپاره او و ملکه او پنځوس زره ډالره د مرستي په ډول ورکوي .

دجدی ـ ۲۷ : يو ٦٦٥ متر اوږ دمعبرديو نيم مليون ډالرو په لګښت دګاز دپايپ لين دتيريدلو په غرض دکلفت په برخه کي دآمو پر سيند جوړيږي .

دجدی ـ ۲۹: دبلخ‌دولايت دکرنی‌دتراکتورونو دترميم ورکشاپ چه‌په پنځلسو ډول ، ډول ماشينونو باندی مجهز دی بشپړشوی په کار پيل‌وکړ .

دجدی ۳۰ـ دهغو پر له‌پسی ور سنتونو په‌اثرچه دفراه په مرکز او دهغه ولايت په نوروم‌ربوطو سيمو کی شوی دکجرك دغرمله دری‌اوبالابلوك له‌پراخو دښتو څخه د فراه دښار په‌لوری بی ساری سيلا وو ئەرا غـلـ چه‌دهغو په‌اثر (۱۵۵۸) کورونه او(٦) سرايونه رنگ شول.

دجدی ۳۰: دافغاني سری مياشتی‌دټولنی دعالی رئيس والاحضرت شهزاده احمد شاه دهدايت سره سم دفراه په‌ښار کی‌دسيلاو مصيبت ځپلوته د مرستی په‌غرض په‌خيمو کمپلو جامو او خوراکی موادو باندی بار د ټولنی دلاری ګانو يو کاروان هغه ولا يت‌ته روان شو.

او همدا رنگه په امبو لانس در ملـو او دلومړنيو مرستو په‌وسايلو سره مجهز يو طبی هيات هم هغه ولايت لا ړ

ددلوی ـ۱: درضا کارومير منو دټو لنی عالی رئيسی والاحضر تی شهزادگی بلقيس په‌هدايت سره دهغی مو سسی خورا کی شيان اونوری مرستی د بلخ دولايت‌بنديانو ښځوته ويشلی شوی .

ددلوی۱ـ: دجلال آباد دنانواياتو اودهغه ځای ښاريانو ته دحکو مت‌له خوا دور څی شپږ زره اودری سوه من‌ه غم په ټا کلی‌بيه ورکول کيږی.

ددلوی ـ۳: دافغانی سری مياشتی‌دټولنی دعا لی‌رئيس والا حضرت شهزاده احمدشاه دهدايت په اساس دلوی اختر درا رسيدوپه مناسبت يوويشت‌تری سايکلونه په‌مرکز کښی مستحقو معيو بينو ته وويشل شو .

ددلوی ـ۹: سږ کال دهلمند اوکند هار ديوسلو دوه نوی زره جريبه ځمکی په‌ساحه کی‌اصلاح شوی غنم کرل شويدی .

ددلوی ـ۸: معظم‌ټو لواك هما يو نی اعليحضرت دهغی خاصی مهربانی له مخی‌چه په‌خپل‌وفادار ملت‌يی لری دهيواد د مر کز اوولايتو ديوشمير نارينه‌و او ښځوبند يانو دبندپاتی موده دلوی اختر په مناسبت‌ببښلی ده.

ددلوی ـ۱۵: يو لکو شل زره ټنه غنم په تيرو پنځو مياشتو کی دهيواددولايتو خلکوته دارزاقو اوعامه ا ړتياو دبرابرولو دعمو می رياست له‌لاری ويشل شوی .

ددلوی ۱۵:دافغان نساجی فابريکی دسږ کال په‌نهو مياشتو کښی څه دپاسه اووه ـ ديرش مليونه متره ټوکران اوشړی تو ليد کړی اوداخلی بازارو نو ته‌يی ايستلـی دی.

ددلوی ـ۱٦: دوزيرانو عالی مجلس د ـ وردګو دولايت دښار نقشه تصو يـب کړه.

ددلوی ـ ۱۷ : په ختيـځ بنـګال کښـی افغانانو يو سل کسيزه ډله دسره صليب‌د بين‌المللی کميټی په الو تکه کښی دکلکتی څخه کابل ته راور سيدله.

ددلـوی ـ ۱۷ : صدراعظم ښاغلی دکتور عبدالظاهر دخپلو ملګرو سره تر غـر مـی وروسته په‌يوه بجه دباختر افغان الو تنی‌په الوتکه کی دفراه دولايت مر کزته‌لاړ.

* دلـغـما ن د ولايـت مـر کـز ميترلام دنوی ښار دجوړولو کار دقرآن عظيم الشان دځو اياتو دتلاوت څخه وروسته‌ديوه مسجد دبنست دږبری په ايښوو لو سر ه شروع‌شو.

ددلوی ـ۱۸ اندمعظم تو لواك هما يو نـی اعليحضرت له مهربانی څخه ډك پيغا مونه دصدراعظم دکـتـور عبدالظاهر په واسطه د نيمروز اوفراه دولايتو دلاش وجوين اوکلای کاه دولسواليو خلکو ته ورسول شو ل.

ددلوی ـ۱۸: داطلاعاتو اوکلتور وزار ت مسلکی مجلس په مطبو عاتو کی هغه خارجی تبليغات منع کړی دی چه دپيسو دور کو لو په مقابل کی ترسره کيږ ی.

ددلوی ـ۱۸: دمحصلينو او دوزارتو د مامورينو څخه دوه سو، او ديرشو تنوسږ کال ددوستتو هيوادو ونو دفيلو شپو نو اوسکا لر شپو نو څخه استفاده کړی ده.

ددلوی ـ۱۹: صد راعظم دکتورعبدالظاهر دفراه دولايت دوروستی سيلاو مصيبت ځپلو لهشپږ مليونه دری لکه اوشپږ دير ش زره افغانی او دنيمروز دولايت دلاش جوين د ولسوالی دسيلاو مصيبت ځپلو خلکوته دری لکه اوه لس زره افغانی دحکو مت له خواد مرستی په حيث منظوری کړی .

ددلوی ـ۲۰: صدراعظم دکتور عبدالظا هر دځپلو ملګرو سره دهيواد دجنوب لويد يځ دولاياتو څخه دځلو رور ځنی کتنی څخـــه وروسته دکند هار نو می الوتکی په ذريعه کابل ته راورسيدل .

ددلوی ـ۲۲: دننګر هار لغمان اوکنړ ونو دولا يتونو دجلال آباد دملکی رو غتون پـــه محوطه کی ديو دوه سوه بستر ييزه روغتون دبنسټ ډبره درو غتيا وزير پوهاند دو کتور محمد ابراهيم مجيد سراج لخوا کيښو د ل شوه.

ددلوی ـ۳۶: په لندن کی دافغانی قره قل دپوستکو دليلامی اله درکه څه دپاسه يو مليونو شپږ لکه اوشل زره پونډ ستر لنګه لاس ته راغلی دی.

ددلوی ۲۹: دجدی دمياشتی په اوږدو کی دګلبهار دنساجی دفابريکی داتو ماتوبد لو په دستګله کی دوه مليو نه دوه لکه اته اويا زره ځلور نوی متره کتان مرينه ، شريسان اوداسی نور توليد شوی دی .

دحوت لو مړی : دحضوری چمن ښا ر ی سالون چه اوه سوه او پنځوس تنه پکښــی ځايږی دکابل سر پر ست ښا روا ل ښاغلی محمدکبير نورستانی له خوا پرا نيستـــــل شو.

دحوت ـ۲: يوزرو دوه سوه سره اوشنه مميز سږ کال دوزير لمتهد د ميوی پاك کولو په فابريکه کښی له بين المللی معيار سره سم پاك شوی اندی يی تړل شوی او خارج ته صادر شويدی .

دحوت ـ۶: دمحرم الحرام د ميا شتـــی لسمه ورځ چه دحضرت امام حسين دشهاد ت دورځی سره مصادفــه وه په ټول هيواد کی ديادونی مراسم پهځای شول .

دحوت ـ۷: افغانی هيات داسلا می هيواد ونو خارجه وزيرانو په دريمه جرګه کښی ګډون په غرض جدی ته لاړ.

دحوت ـ۸: دافـــغانستان درو غنيا تـــو د سهامی شرکت توليدات چه په مختلفو ډرجو سره موبل ايل، ديزل او سيايل دی بازارته وړاندی شول.

دحوت ـ۹: يو شمير خارجی کمپنی حاضری شوی دی چه دجنګلك دنجاری دفابريکی ډول ډول توليدات رانيسی .

دحوت ـ۱۰: دهرات داردو خا ن پـــه تحقيقاتی فارم کی سږ کال ۲۸۱ چوڼه غنم او نور تخمونو کرل شوی دی.

دحوت ـ۱۱: په تيرو يوو لسو مياشتو کی په ښکلو ديزاينونو بيل بيل ډول څلـور لکه اوه لس زره نهه سوه څلور اتيا متـر مربع افغانی قالينی دقالينو دصادرو نکـــی اتحاديی په واسطه خارج ته صا دری شو ی دی.

دحوت ـ۱۲: ددلوی په مياشت کی دګلبهار دنساجی دفابريکی داتومات او بدلو په دستګاه کی يو مليون اووه سوه نه اويازره پنځه سوه دری څلو ينبست متره کتان شرين ،مر ينـــه سان، فللين اونور ټو کران تو ليدشويدی.

## کوونی خبرونه

**دحوت ـ۱۷:** دامام اعظم ابو حنیفه په نامه دپروان دولایت عامه کتابخانه دقرآن کریم دخو آیتو دتلاوت نه وروسته داطلاعاتو او کلتور دوزیر ښاغلی محمد ابراهیم عباسی له خوا پرانیستله شوه .

**دحوت ـ ۱۸:** دافغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ ددوستی ۵۱ کالیزه په کابل کښی ډیری لمانځله شوه . (کی ونمانځله شوه .)

**دحوت ـ ۲۰:** د۱۳۵۱ کال عادی او انکشافی بودجه داساسی قانون د۵۸ مادی پـه اساس مشرانو جرگی تهوړاندی شوه .

**دحوت ـ ۲۱ :** په پښتو ژبه دافغانستان دجغرافیاوی قاموس شپږم ټوك لهچاپه څخـه راوتلی دی .

**دحوت ـ ۲۲ :** مشورا دهدیم کال دو همه غونډه ددواړو جرگو درئیسانو له خوا شروع شوه.

**دحوت ـ ۲۳:** صدراعظم دکتور عبدالظاهر په یوه صادرشوی فرمان کی داطلاعاتو او کلتور وزارت تههدایت ورکړی دی چه راډیو افغانستان باختر آژانس اودهیواد نور نشریات په مداوم ډول دپښتونستان په هکله خپلو خپرونو تـه پراختیا ورکړی .

**دحوت ـ ۲٤ :** صدراعظم دکتور عبدالظاهر دشوروی اتحاد دوزیـــرانو دشوری درئیس ښاغلی الکسی کاسیگین په بلنه سهار پـه شپږو بجو دیوه رسمی مسافرت په غرض هغه هیوادته روان شو .

**دحوت ـ ۲۵:** دضرابی دپلاستیك جوړولو فابریکه دوړځی یونیم زرودانی پلاستیـــکی پطنوسان گیلاسونه او غابونه جوړوی.

دغه فابریکه تیرکال دپنځه ملیونه افغانی لومړنی پانگه سره دخصوصی پانگی اچولـو دکمیټی له خوا منظور او تاسیس شوی ده.

**دحوت ـ ۲٦ :** صدراعظم داکتر عبدالظاهر ښاغلی الکسی کاسیگین ترمنځ دافغانستان په وخت دماسپښین په دوه نیمو بجو دکریملین په ماڼی کی خبری وشوی .

**دحوت ـ ۲۷ :** په کندز کښی په عصری توگه دکاغذ جوړولو شیښنو جوړولو لبنیا تو دمالگی دتصفیی او حیوانی خوراکی مواد و دبرابرولو دفابریکو دتاسیس او دغه رازدیوه مجهز مسلنخ جوړیدل مطالعه کیږی .

# اختراعات واکتشافات

## عراده خرطومدار

متصدیان کمپنی انجنیری هولویل ایالت مشیگان یکنوع ماشین خرطوم دار راایجاد کرده‌اند که به منظور تطهیر جاده ها و بر داشت براطله هاوخاشاك ازکناره های سرك محل استعمال قرارداده میشود . این عراده ماشین سیار رابنام (واکیوم کلینردیو پیکر) یاد میکنند .نیروی کشش خرطوم آن بحدی قویست که میتواند حتی قطی ها وبوتلهای

خالی وتوده روز نامه های باطله رانیز به نفس کشکند واز کنار جاده بر داشت نماید البته باطله های مزبور ازراه لوله خرطوم نمابیك تانك ذخیره که درعقب عراده نصب است نقل داده میشود .ماشین تطهیرجاده‌ها رامعمولا بالای موترك مخصوص گلف بازان نصب وحمل میکنند این ماشین رادر بالای تراکتور وموتر های‌لاری نیز میتوان نصب و حمل کرد.ازین ماشین تطهیر بالخاصه در پارکها وتوقفگاه های موترکه مردم اشیای باطله وبیکاره شانرا بدور می اندازد .خوبتر

استفاده شده میتواند دهل ذخیره عراده‌تطهیر که ازمواد پلاستیکی ساخته شده دارای ظرفیت شصت‌گیلن میباشد وقتیکه دهل از مواد باطله مملو گردید آنرادربین یك‌موتر لاری کلان تخلیه میکنند وسپس دوراز شهر انتقال میدهد .

## ماشین جدید تخم پاشی

کمپنی انترنشنل ها روستر شیکا کویك ماشین جدید تخم فشانی زراعتی را ایجاد کرده است که‌بزعم آنها یك تحول بارز محسوب بوده ودر دوقرن گذشبه چنین تحول تخنیکی مهمی در زمینه پدید نیامده است . این ماشین که بنام ۴۰۰ سایکلو یاد میشود

تخمهای زراعتی داخل یك دول رابوسیله فشار هوا در جریهای تخم ریزی‌جا میدهد و سپس در شیار های زمین طور منظم‌مه نهد وباخاك مي پوشاند .

این ماشین جدید برای جا گذاری انواع مختلف تخم های زراعتی بکار رفته میتواند .

## قمر بین

متخصصین لنین گرادی بایجاد یك‌تلسکوپ جدید نایل گردیده اندکه توسط آن میتوان اقمار مصنوعی راحتی درروزدر فضای زمین مشاهده کرد .تلسکوب مزبور بنام (دور بین

ای‌تی‌ـآ) یاد میگردد این روزها تعداد اقمار مصنوعیکه در مدار های مختلف فضای زمین

در گردش اند خیلی زیاد شده است ودرآینده بیشتر خواهد گردید .هرگاه توسط تلسکوپ مزبور به آسمان نظاره کنید بده هاوصد ها دانه اقمارمصنوعی(قبلا پرتاب شده)رامشاهده خواهید کرد .

کودکان مکاتب بااستفاده ازین دور بین بیشتر دلچسپی می گیرند والبته این وسیله علمی وتفریحی جهت تنویر افکار و آموزش آنها خیلی مفید ثابت میشود .

قرار تجربه کسیکه اقمار مصنوعی را توسط تلسکوب در هوادید خط السیر آنرا با دلچسپی تعقیب کرده میرود واز تلسکوپ مزبور به آسانی دست نمیکشد .

## دستگاه های کوچك برق ذروی

متخصصین شوروی دراحداث شوروی و ایجاد دستگاه های کوچك تولید برق‌ازنیروی اتومیك پیشرفت خوبی نموده است .یکی از دستگاه های جدید مزبور بنام (تس‌ـ۳) یاد میگردد که باظرفیت ۱۵۰۰ کیلوات ساخته شده وطور سیار بهرجاکه خواسته باشند طور آسان انتقال میدهند .

این نوع دستگاه کوچك عصرو علاوه بر تولید برق مقدار زیاد بخار رانیز میتواند ۲۸۰ درجه حرارت وبیست اتوموسفیر فشار تولید بکند .

## اختراع ماشین جدید برش آهن وفولاد

متخصصین شوروی طرح ماشین جدیدی را تکمیل کرده‌اند که (پل) آن باسرعت زیادتر ازماشین هاو قبلی گردش مینماید وبالخاصه برای قطع وبرش فلزات گداخته فولاد فلزات غیر آهنی ــ المونیم ومرکبات آن بکارمیرود. این ماشین به مصرف ارگون ونایتــــروژن احتیاجی ندارد .

## برای پائین آوردن بل ترمیم موتر

یك انستیتوت تحقیقاتی در مونشن دست بابتکار ودرعین حال مفیدی زده است بدیــن معنی که‌اعضای انستیتوت مبارزه راعلیه آن عده از گاراژ هاومراکز ترمیم موتر که‌با خدمه وبناحق پول گزافی ازمالکین موتر هــا می ستانند آغاز کرده است انستیتوت راهها ی معقول وکم مصرف ترمیم های قابل ترمیم را پیشنهاد مینمایند علاوتاً اعضای انستیتو ت علل تخنیکی وفنی تصادمات رانیز بر رسی مینمایند وکم مصرف ترین آنرابه مالکیــن موتر صاحبان گاراژهاوغیره نشان مید هند. میدهند البته هدف اصلی آنها پائین آوردن قیمت ترمیم موتر میباشد .

## پلاسبیت

موسسه تتبعات اموال‌مصنوعی واقع شهر کیف اتحاد شوروی بایجاد یکنوع جامــــه پلاستیکی جدید موفق گردیده است که‌ازنگاه اوصاف بخصوص درخور توجه و دلچســی میباشد جامه پلاستیکی مزبــور کــه بنــام (پلاسبیت) یاد شده است در مقابل نفوذ آب مقاومت داشته ودر اثر تغییرات شدید درجه حرارت خواصش‌رازایل‌نمیسازد جامه‌پلاسبیت ممکن است مورد استفاده واستعمال زیاد ی درامور ساختمان خطوط ریل زیر زمینی بندو انهار وامثال آن پیدا بنماید .

## خون مصنوعی هم بوجود آمد

دو شرکت جاپانی با استفاده از تر کیب فلورین به ساختن خون مصوعی موفق شده‌اند این خون که‌برای اولین بار ساخته شده از فلور وکاربن وجز عمده آن بوجود آمده است تجارب نشان داده که استفاده ازخون‌مصنوعی در حیوانات نتایج اطمینان بخشی بار آورده است .واقتی ۹۰ فیصد خون طبیعی از سگها کشیده شدو جای آنراخون مصنوعی اشغا ل کردا‌ین سگها هفت‌ماه زنده بودند .

بقرار گزارش این شرکت‌ها خون مصنوعی از طریق عصاره گیرو فلورو کاربن درمحلول سودیم کلوراید بدست آمده است .

## کشف آله جدید اندازه‌گیری ضربان قلب:

یك آله که بدون برقراری تماس با جسم انسان می تواند ضربان قلب را اندازه کند توسط دانشمندان کلورادو انکشاف یافتــه است .این آله بنام مگنتوکار دیو گراف یاد شده وباتولید علایم برقی که متناسب بــه ضربان مقتناطیسی قلب است میتواننداندازه ضربان راسنجش نماید .

## کشف بزرگترین مخزن فوسیلهای‌ماهی

یك مخزن بزرگ فوسیل ماهی در نشیب های متشکل از گل رس در نزدیك (سیس)در لاتویا کشف گردیده است گفته میشود کــه فوسیلهای مذکور اسلاف موجودات ذوحیاتین امروزی میباشد .ای ن‌فوسیلها تقریباً ۲۵۰ ملیون سال عمر دارند .

## کشف سکه های هزار سال قبل

ساشا متعلم مکتب در منطقه گرودنو(اتحاد شوروی) مخفیگاه یك تعداد سکه های قدیمی عربی رادر نزدیك شهر مسکونی خود پیدا کرد. متخصصین‌ومؤرخین‌اکادمی علوم‌جمهوری (بلوروسی) به ۲۳۳ سکه یافت شده عــلاقه زیاد گرفتند واظهار داشتند که‌سکه هـــای مذکور در اواسط قرن دهم هنگام فرمانروایی سامانیان در قسمت های تاشکند سمر قند ودیگر شهر های آسیای‌مرکزی ضرب زده‌شده است .

# وفیات مهم سال



اعلیحضرت مهندرا پادشاه فقید نیپال

اعلیحضرت مهندرا پادشاه نیپال که بیک حمله قلبی مصاب شده بود به تاریخ یازده ه دلو ۱۳۵۰ مطابق اول فبروری ۱۹۷۲ دراقامت گاه زمستانی خود واقع بهارات پوردر دو عد کیلو متری کتنهندو درگذشت وی پنجاه ویک ساله بود

پسرش برندرا بربکرام شاه دیوا ولیعهد بیست وهفت ساله نیپال بلا فاصله به حیث پادشاه جدید آن کشور طی مراسم مختصری بتخت سلطنت آنکشور جلوس نمود.

فریدریك نهم پادشاه دنمارك روز ۲٦ جدی به عمر ۷۲ سالگی وفات کرد ودختر ارشد وی مارگریت بحیث ملکۀ دنمارك اعلام گردید مارگریت سی و یکسال داشته وبعد ازاینکه پدرش پادشاه دنمارك چشم از جهان پوشید طی مراسم تحلیف را بجا آورد.

**نکیتاخروسچف :-**

نیکیتا خروسچف صدر اعظم سابق اتحاد شوروی روز ۲۱ جوزا به عمر ۷۷ سالگی در اثر سومین حملۀ قلبی در شفاخانۀ کریملین درگذشت خروسچف از سال ۱۹۵۸ تا ۱۹٦٤ مدت یازده سال به حیث سرمنشی اول حزب کمونست و بعداً بحیث صدر اعظم آنکشور اجرای وظیفه می نمود. چنانچه بعد از جوزف ستالین صدر اعظم زمان جنگ نیکیتاخروسچف چهرۀ عمدۀ سیاست اتحاد شوروی بود .

**قتل وصفیتل :**

صدر اعظم اردن وصفیتل به تاریخ ۷ قوس هنگامیکه از جلسۀ شورآی مشترك دفاع عرب به هوتل مشراتون قاهره برمیگشت درمدخل هوتل هدف گلوله باری سه مرد مسلح گردید وبقتل رسید .



کیورگی دوبروولسکی کماندر سفینه

سه کیهان نورد سیوز یازدهٔ اتحاد شوروی حین فرود آمدن سفینهٔ به زمین روز ۹ سرطان در اوایل صبح مرده یافت شدند . این سه کیهان نورد اتحاد شوروی که بتاریخ ۲۹ جون غرض اتصال با استیشن علمی سالیوت بفضا پرتاب شده بودند عبارت از : کلنم گیورگی دوبرولسکی و نیکولای او ویلچ ویلکـــوف وایوانو ویچ پاتسایف ، آنها بعد از آنکه پروگرام پرواز خودرا بصورت کامل به سر رسانیدند در حال مراجعت به زمین از ادامه حیات محروم شدند



نیکولای اوویلچ ولکوف انجنیر پرواز



ویکتور پاتسایف تست انجنیر سفینه



استاد نبی گل : هنرمند مشهور وطن در اثر مریضی که عاید حالش بودروزهفده‌جدی ۱۳۵۰ به عمر ۷٦ سالگی وفات یافت ودر شهدای صالحین به‌خاك سپرده شد .

بناغلی محمد ابراهیم عباسی وزیر اطلاعات وکلتور باشنیدن خبروفات استاد نبی‌گل‌مرگ استاد رایك ضایعه‌بزرگ هنری‌خوانده‌متذکر گردید که استاد نبی گل مثل استاد قاسم و

## خدای بخښلی استاد نبی گل

استاد غلام حسین از بنیان گزارا ن‌مکتب موسیقی افغانی بود که آهنگ های افغانی را به امتزاج ادب افغانی برپایه اصو ل‌علمی موسیقی کلاسیك بناکرد وآنرا رنك ورو نق مخصوصی بخشید .

وزیر اطلاعات وکلتور علاوه کرد استاد نبی گل به ذخایر بزرگ‌آهنگهای محلی و فولکلوری دسترس کافی داشت .

استاد نبی‌گل چون یك ستاره تابنا ك بز مجموعه بزرگ از گلهای هنری‌موسیقی افغانی خصوصا موسیقی پښتو نورپاشی کرد و آنرا به نور استعداد سرشار خود رنگ وکیف‌تازه بخشید :

# کور ودانی

په دی وسیله دښاغلو مستمندی داطلاعات او کلتور دوزارت دعکاسی مدیر او غړی ئی اسحق محمود، اومصطفی وزیری، دلینو تایپ‌دآمر ښاغلو کاظم علی «عنایت»، آپریتر میرسلیمان میراکبر (سروری) سرمرتب او غلام محمد (سرباز) .

اودمراقبت‌اوورکشاپونودمدیرښاغلوعبدالحکیم، اوباشی‌محمدرفیق شریفی‌اومحمد مهدی معاون ماشین‌کارمحمدعارف اومحمدبشیراو همدارنګه دزنګو ګرافی دمدیر ښاغلو عبدالله جـان، عبدالوهاب ، عبدالغفور عکاس ،او دصحافـی دعبدالرحیم «کارګر» څخه چه زمونږ سره ئی دافغانستان کالنئ په ترتیب او چاپولو کـی مرسته کړی ده دزړه دکومی کورودانی وایو.
(اداره)



مسئول مدیر: محمد ولی ځلمی

مهتممان:

حبیب الرحمن ننګ

او پیغلې راحله راسخ

نیټه: ۱۳۵۱ کال دوری لمری

دولتي مطبعه